بسم الله الرحمن الرحیم

# آیینهٔ اصلاح

## کلید بی‌همتا برای قفل‌های بستهٔ زندگی

بازگشت به سوی ایمان به خدا و آخرت تنها روزنهٔ امیدی است که رهایی انسان امروزی را از دشواری‌هایی که زندگی انسان را به نابودی تهدید می کند، نوید می‌دهد. «نابودی»، نابودی ویژگی‌های ذاتی، و مایه‌های معنوی انسان که انسان‌بودن انسان به آن‌ها وابسته است، و با آن خصوصیات است که سروری بر جهان و جانشینی خدا را در زمین سزاوار می گردد.

ایمان راستین – که آیین اسلام را برای انسان‌ها به ارمغان آورده است – راه حل نهایی معماهای زندگی انسان معاصر است که دانش و فلسفه را در برابر خویش به زانو درآورده است، و اندیشمندان و قانونگذاران و اصلاح‌طلبان را به حیرت افکنده است.

خیلی مناسب به نظر می‌آید که در اینجا سخنان درخشندهٔ مصلح اسلامی کبیر، ابوالحسن ندوی را بیاوریم که بیان می کند، چگونه خورشید رسالت محمد صلی الله علیه وسلم بر جهان تایید و روشنایی جدیدی به آن بخشید و آن را از حیات جدیدی برخوردار ساخت. و چگونه پیامبر بزرگوار اسلام حضرت محمد صلی الله علیه وسلم قفل‌های بسیار و متعددی را با کلید شگفت‌انگیز ایمان گشود. استاد در یک گفتگوی شاعرانه که در کنار غار حرا در مکهٔ مکرمه با خود داشته است، چنین می گوید:

«زندگی سراسر قفل‌های بسته و درهای ناگشوده بود، عقل و خرد انسان بسته و بیکاره بود، حکیمان و فیلسوفان از گشودن آن عاجز شدند، وجدان بسته و بیکاره بود، واعظان و مرشدان از گشودن آن ناتوان شدند. قلوب بسته و بیکاره بودند، حوادث جهان و نشانه‌ها نتوانست آن‌ها را بگشاید. مدرسه‌ها بسته و بیکاره بود، دانشمندان و معلمان در گشودن آن عاجز ماندند. دادگاه‌ها قفل شده بودند، تظلم کنندگان و مراجعه کنندگان از فتح و گشودن آن ناتوان ماندند. خانواده‌ها بسته و قفل شده بودند، مصلحان و اندیشمندان از گشودن‌شان عاجز گشتند. کاخ فرمانروایی بسته و قفل شده بود، ملت ستمدیده و کشاورز زحمتکش و کارگری که حقش را پایمال کرده بودند، نتوانستند آن را بگشایند. گنج‌های ثروتمندان و فرمانروایان بسته و قفل شده بود، گرسنگی بینوایان و برهنگی زنان و نالهٔ ضعیفان آن‌ها را نتوانست بگشاید و عاجز ماندند. بسیار شده بود که مصلحان بزرگ و رجال بزرگ قانون در پی گشودن یکی از این قفل‌ها برآمده بودند، اما شکست خورده بودند و کناری نشسته بودند. هر قفلی فقط با کلید خودش باز می‌شود. قرن‌ها پیش کلیدهای خود این قفل‌ها را گم کرده بودند، و کلیدهایشان به قفل‌ها نمی‌خوردند و به هیچ دردشان نمی‌خورند. بعضی خواستند قفل‌ها را بشکنند اما دست‌هایشان را مجروح کردند و ابزارهای خودشان را شکستند.

سرمقاله

# حکومت باید د ښځو په اړه دملګرو ملتونو دسند پر ولاړندې ودريږي

دملګرو ملتونو دښځو دڅېړونو مرکز، وروسته له دوه اونۍ بحث او څېړنو، دښځو په اړه يو سند لاسليک کړ، چې يو له خطرناکو سندونو څخه شمېرل کيږي.
دا سند د (دښځو پر وړاندې تاوتريخوالي ته دپای ټکی) تر سرليک لاندې، د (CWS) په ۵۷مه ناسته کې ديوې اعلاميې په بڼه صادر شو، چې له اسلامي اصولو او له انساني سليم فطرت سره په ښکاره ټکر کې دی.
دا سند ، تر اوسه دلاسليک شوو سندونو نه، تر ټولو داسلام ضد سند دی، چې دملګرو ملتونو له يوې اړوندې اداري څخه، ديو غولونکي سرليک لاندې (دښځو پر وړاندې تاوتريخوالي ته دپای ټکی) صادريږي.
دا سند تاکيد کوي چې بايد د بې حيا (فاحشو) ښځو او همجنس بازانو حقوق په هر اړخيز ډول هغوی ته ورکړل شي، هغوی ته په ټولنه کې مقام ورکړل شي، دقدر په سترګه ورته وکتل شي او دضرورت پر مهال له هغوی سره همکاري وشي.
په دې سند کې دښځو دحقوقو تر نامه لاندې، هغه مواد ځای پر ځای شوي دي چې دکورني نظام د له منځه وړلو، دفحشاء او بې حيايۍ دخپرولو او په ټولنه کې دی دهر اړخيز انارشيزم او حيوانيت لپاره لاره پرانيزي.
ددې سند له مخې ښځه کامل واک لري چې دځان لپاره، ښځينه او يا نارينه ملګری انتخاب او له هغه سره واده وکړي، او پر هغې څوک دولايت او برلاسي حق نه لري، او هغه پرته له ولي څخه واده کولای شي، همدا راز دمهر الغاء، دطلاق واک له نارينه اخيستل او نورې داسې مادې چې له اسلامي قوانينو او انساني ټولنيزو اصول سره په هر اړخيزه توګه په ټکر کې دي، ددې سند منځپانګه تشکيلوي.
تر اوسه دسعودي عربستان، مصر، ايران، دعلماوو دنړيوالې تولنې، ازهر شريف، او ډيرو نورو اسلامي هېوادونو، ډلو او شخصيتونو له لوري ددې سند دمنځپانګې ډيرې برخې رد شوې دي، تردې چې د واتيکان له خوا هم پردې سند نيوکه شوې ده، ولې په خواشينۍ سره تر اوسه پورې دافغانستان حکومت، او پارلمان په دې اړه هېڅ هم نه دي ويلي.
زمونږ غوښتنه له حکومت او نورو افغاني خواوو څخه داده چې دبې حيايۍ ددې سند پروړاندې پريکنده دريځ ونيسي او په دې اړه خپل موقف ملت ته په صراحت سره بيان کړي، همدا راز دملګرو ملتونو اړوندو ارګانونو او نړيوالې ټولنې ته هم په دې اړه دافغان مسلمان ولس موقف روښانه کړي، او په هر اړخيزه توګه ددې سند له لاسليک کولو څخه ډه ډه وشي.


## جمعيت اصلاح افغانستان

بخش نشرات و فرهنگی



هفته نامه ملي اصلاح اونيزه

داسلام داصيل فهم منبر

Email:eslahmilli@gmail.com

www.eslahonline.net

دليکوال پلاوي تر نظر لاندې

**دامتياز خاوند:**

جمعيت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان

**رئيس هيأت تحرير:**

عبدالفتاح جواد

**مدير مسئول:**

نقيب الله حميد 0774327438

آدرس بانکی: جمعيت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان کابل بانک
A/c No=1001202080036
(افغانی)

آدرس بانکی: جمعيت اصلاح وانکشاف اجتماعی افغانستان کابل بانک
A/c No=1001201080036
دالر امريکائی

ديزاينر: محمد مسلم حرير
Mob:0788298571




به بهانه ی آغاز سال تعلیمی:

# معارف را معیاری و با کیفیت بسازیم

آغاز سال تعلیمی جدید ( ۱۳۹۲ هـ ش) را به فرد،فرد هموطنان خاصتاً اهل معارف وتعلیم وتربیه کشور ازصمیم قلب تبریک وتهنیت عرض می نمایم.

پیشبرد زندگی روزمره انسانها ازیک طرف وترقی وتعالی جامعهٔ بشری ازجانب دیگر، قبل ازهمه به توسعهٔ خوانندگی وسواد وکسب علوم ومعارف بستگی دارد، ملت های پیشرفته ومرفه جهان از طریق توجه به تعلیم وتربیه به مدارج ترقی وکمال رسیده اند وملتهای عقب مانده وضعیف به علت فاصله گرفتن از تعلیم وتربیه دربدبختی وفلاکت بسر می برند و پیوسته مسیر نزولی را می پیمایند و گرفتار بحران اند.

متأسفانه ملت متدین وعلم دوست ما به علت سه دهه جنگ های تحمیلی که تا امروز نیزدوام دارد، ازتعمیم و گسترش معارف وداشتن نظام تعلیم وتربیه درست ومعیاری محروم گردیده وبه همین علت ازکاروان پیشرفت وتمدن بشری فرسنگها عقب مانده وقاطبه ملت در بدبختی وفلاکت به سرمی برد. امروز آنچه که مهم است این است که به طور جدی در این عرصه کار صورت گیرد و باید این امر در اولویت کارهای دولت افغانستان قرار داشته باشد، چون تعمیم معارف درسراسر کشور ومعیاری ساختن نظام تعلیم وتربیه دربخش دولتی و درسکتورخصوصی ازضروریات مبرم زندگی ما درمرحله کنونی می باشد.

اما داشتن نظام تعلیم وتربیه خوب ومعیاری، آرمانی است که تا همه اقشار ملت به آن توجه جدی ندهند، به آسانی تحقق یافتنی نیست. اگر ازیک طرف وظیفهٔ اهل معارف اعم ازمربیان واداره چیان است که با اخلاص، به تربیهٔ ابنای وطن ومعیاری ساختن نظام وتعلیم وتربیه درکشور همت بگمارند، ازطرف دیگر، وظیفه دانش آموزان وطلاب علم است که با جدیت واخلاصمندی به کسب علم همت گماشته واز ضیاع اوقات شان درامور بیهوده و غیر سودمند جلوگیری نمایند.

چنانچه والدین نیز درین رابطه مسؤلیت سنگینی به عهده دارند تا ازطریق تفاهم وارتباط دائم با مکاتب، با اولاد شان درتکمیل کارخانه گی همکاری نموده حضورآنها را درمکاتب ودرسگاه ها یقینی سازند.

مطبوعات ورسانه ها ازهمه بیشتر درین رابطه مسؤل اند تا بخاطرپیشرفت وتعالی مملکت، نسل جوان کشور را ازطریق برنامه های مفید به معارف وتعلیم وتربیه تشویق نموده ازضیاع اوقات شان دربرنامه های مبتذل خود داری نمایند.

وظیفه حکومت وخاصتاً وزارت جلیله معارف است تا تنها به ارائه ارقام وتوجه به جانب کمی معارف کشور بسنده نه نموده درکنار توجه به کمیت، دربلند بردن سطح کیفیت تعلیم وتربیه کشور توجه بیشتر به خرج دهند تا جوانان ما واقعاً توانایی خدمت به وطن وادامه درس دردانشگاه وپوهنتونها را بعد از فراغت ازمکتب ومدرسه داشته باشند.

بیایید همه باهم بخاطر ایجاد یک افغانستان مرفه، آباد وآزاد دست بدست هم داده ومعارف کشور را معیاری وباکیفیت بسازیم.

وماذلک علی الله بعزیز

نصیراحمد نویدی

رئیس شورای مرکزی جمعیت اصلاح افغانستان



**کارپوهان:**

# د بګرام زندان د واک پر ځای ساتنه افغانانو ته وسپارل شوه!

په دې وروستيو کې ولسمشر کرزي او امريکا ترمنځ د بګرام زندان پر سپارلو يو شمېر بحثونه راوپارېدل، چې ولسمشرکرزي دخپلو خبرو په ترڅ کې په امريکا نيوکې وکړې او ويې ويل، چې طالبان او امريکا له يو بل سره پټې اړيکې لري او له يو بل سره په خبرو بوخت دي، په همدې ترڅ کې دامريکا بهرنيو چارو وزير کابل ته راغی اود نوموړي د راتګ سره سم بګرام زندان هم افغان چارواکو ته وسپارل شو، ولسمشر کرزي هم رسنيو سره په خبرو کې وويل، چې خبرې يې غلطې تفسير شوي او له ځرګندونو څخه يې هدف د اړيکو بهتروالي او اصلاح ؤ، نه دا چې د افغانستان او امريکا اړيکې خرابې شي، همدا ډول يو شمېر خلک په دې اند دي، چې کابل ته د امريکا د بهرنيو چارو وزير جان کيري ناڅاپي راتګ له ولسمشر څخه د هغو خبرو سپيناوی غوښتل ؤ، چې د امريکا پر خلاف يې کړې وې.

د سياسي چارو کارپوه او شنونکی، ښاغلی وحيد مژده وايي، چې د ولسمشر کرزي ځرګندونو د امريکا په سنا مجلس کې سخت غبرګونونه راوپارول او هغوی يې دې ته وهڅول، چې د افغان ولسمشر پر خلاف مختلفې ځرګندونې وکړي، نو له همدې لامله د امريکا حکومت مجبور شو، چې کابل ته د بهرنيو چارو وزير راولېږي، تر څو هغه ستونې چې ولسمشر کرزي يې دې ځرګندونو ته هڅولی دی، هوارې کړي او په دې برخه کې د دواړو هېوادونو په اړيکو خبرې وکړي، نو له همدې لامله دبګرام زندان هم وسپارل شو او هم ولسمشر کرزي خپلې خبرې بېرته واخستې او ويې ويل، چې زما خبرو اصلاحي بڼه لرله نه د يو بل پر ضد ځرګندونې.د ښاغلي مژده په اند، چې د امريکا لخوا ددې اړيکو د بيا رغولو څخه يو ستر هدف دا هم و، چې د امريکا سره د لاسليک کېدونکي امنيتي سند پر سر ولاړې خبرې بيا پيل کړي، ځکه د هغه سند امضاء کېدل د امريکا لپاره خورا اړين دي، نو له همدې لامله يې له ولسمشر کرزي سره دا خبره هم مطرح کړه او په هغې سند د خبرو دبيا پيل کېدو خبره وشوه.

د افغان چارواکو په وينا، چې د بګرام زندان دوی ته سپارل شوی او اوسمهال يې واک له دوی سره دی، خو د يو شمېر خلکو په وينا، چې د بګرام زندان د لېږد تړون ۹ مه ماده کې راغلي،چې د محکمې د پرېکړې نه مخکې يا وروسته، که افغان دولت کوم بندي خوشې کوي او متحده ايالات هغه کس د امنيت لپاره ګواښ وګڼي، افغان لوری به په دې اړه مساعده ملاحظه لري. يعنې افغان دولت به د متحده ايالاتو نظر جدا؛ په پام کې نيسي او د متحده ايالاتو د خوښې پرته څوک خوشې کېدای نه شي نو آيا دا دې معنی نه ورکوي، چې د بګرام زندان د بنديانو خوشې کول او يا د بنديانو سرنوشت اوس هم د امريکايي ځواکونو په لاس کې دی؟

ښاغلی مژده وايي، چې د ۱۳۹۰ ل کال د حوت په ۱۹ امريکا او افغان دولت ترمنځ يو تړون لاسليك شوی دی، چې په هغه کې راغلي و، چې افغانستان دا تصديقوي، چې د خپلو قوانينو په رڼا کې د اداري نيونې يا د قضايي څارنې پرته او مخکې له دې، چې يو کس جرم ترسره کړي او يا يې پلان لري، چې د يو جرم مرتکب شي نو هغوی يې بندي کولی شي، او دا کار بايد د افغان حکومت لخوا ومنل شي، دا داسې ماده ده، چې په ۱۹۷۰ ميلادي کال، کې د ژنيو د کنوانسيون لخوا تصويب شوې ده، راغلي دي، چې که چېرته په کوم هېواد کې يو کس ددې هېواد د امنيت لپاره ګواښ و او شك کېده، چې هغه به په راتلونکې کې، د جرم مرتکب شي نو دولت کولی شي، هغه ونيسي او پرته له قضايي تعقيب څخه هغه په بند کې وساتي.

ښاغلی مژده زياتوي" همدا دليل دی، چې په فلسطين کې اسراييلي ځواکونه پرته له محکمې څخه فلسطينيان په خپلو زندانونو کې ساتي، په افغانستان کې هم عين مسئله ده، امريکايي ځواکونه په بګرام کې ګڼ شمېر دا ډول بنديان ساتي، چې د هېڅ ډول جرم مرتکب شوي نه دي خو امريکا يې د ځان لپاره ګواښ بولي او هغوی د مجرم په ډول پېژني، نو ځکه افغان دولت هم بايد کله چې موافقه لاسليك کوله بايد ددې قضايي نيونې پرته بندي کول يې بايد په کې واضح کړي و، ځکه په بين المللي قوانينو کې که داسې څوک نيول کېږي نو هغه به يو يا دوه يا درې کسان وي، خو مګر مونږ ګورو، چې په بګرام کې په سلګونو کسان بنديان دي، چې دا په خپله له بين المللي قوانيونو څخه سرغړونه ده".

د ښاغلي مژده په اند افغان چارواکو د بګرام زندان کيلي ترلاسه کړه، خو اوس بايد حامد کرزی د امريکا د زندان د ساتونکي په ډول کار وکړي، ځکه د هغو قوانينو څخه بايد ساتنه وکړي، چې په افغانستان کې نشته او نه په اسلام کې شته، چې يو څوك دې پرته د جرم له ارتکاب څخه وساتل شي، نو افغان چارواکي به اوس دا خبره مني او د امريکا له بنديانو څخه به ساتنه کوي.

د بګرام له ستر زندان څخه پرته د افغانستان په نورو سیمو کې هم له امریکایانو پرته نور هېوادونه هم لکه برتانیا او یا هغه هېوادونه چې دلته ستر پوځي نفوذ لري، په خپلو پوځي قرارګاو کې له ځان سره افغان بندیان دي او ګڼ شمېر بې ګناه افغانان، یې له محاکمې پرته له ځان سره ساتلي دي، دا چې د بګرام زندان له سپارلو وروسته به یاد بندیان هم خوشې او یا افغان دولت ته وسپارل شي، کنه ښاغلي مژده زیاتوي، چې په افغانستان کې بهرني ځواکونه ډېرې غټې قرارګاوې لري او هلته نه افغانان د ورتلو حق نه لري او نه د سره صلیب نړیواله کمېټه نو معلوم نه دي، چې دوی به له ځان سره څومره بندیان ولري، خو د امریکا سره په شوي قرار داد، کې ویل شوي دي، چې هغوی به ټول افغان بندیان حکومت ته سپاري، خو اوس مشکل په دې ځای کې دی، چې امریکایي ځواکونه به بګرام پرته په نورو ځایونو کې د زندانونو او یا د افغان بندیانو د نه شتون خبره کوي او وایي، چې له بګرام پرته له دوی سره نور افغان بندیان نشته.

افغان ولسمشر حامد کرزي په افغانستان کې د بګرام زندان سپارل او یا په دې هېواد کې د امریکایي ځواکونو لخوا ځان سره د افغان بندیانو ساتل د ملي حاکمیت نقض کېدل وبلل او له امریکا څخه یې د زندان د سپارلو عاجله غوښتنه کول، تر څو د افغانستان ملي حاکمیت ته درناوی وشي، خو ښاغلي مژده بیا وایي، چې ملي حاکمیت یواځې د زندان په سپارلو نه پر ځای او خوندي کېږي، ځکه ملي حاکمیت یواځې د بګرام زندان پورې اړه نه لري، هغه زیاتوي "حامد کرزی، چې له امریکایانو سره امنیتي تړون لاسلیکوي او دلته امریکایي ځواکونو ته قضایي خوندیتوب ورکوي ایا دا خپله د ملي حاکمیت نقض نه دي؟ په هر لحاظ حامد کرزي یو ورځ یوه خبره او بله ورځ بله خبره کوي چې له همدې لامله د هغه په خبره ډېر اعتبار نه شي کېدی".

د سیاسي چارو کارپوه او شنونکی ښاغلی عبدالستار سعادت په دې اند دی، چې افغانستان د امریکا د بهرنیو چارو وزیر جان کیري راتګ د هغو اړیکو د ترمیم لپاره و،چې دلته د هغه هېواد دفاع وزیر په راتګ سره خرابې شوې وې، د نوموړي په اند جان کېري د راتګ د هغه د سفرونو د هغې لړۍ برخه وه، چې دنړې هېوادونو ته یې کول اوپه ځانګړې توګه هغو هېوادونو ته چې امریکا ورسره نژدې اړیکې لري، او افغانستان ته یې د راتګ غټه موخه هم دا وه، چې دلته د وردګو څخه د امریکایي ځواکونو دوتلو او د بګرام زندان د سپارلو په اړه له افغان چارواکو سره خبرې وکړي د نوموړي له سفر څخه مخکې دا هر څه ورته اماده شوي و، چې په راتګ سره یې یاد کارونه ترسره شول او نړۍ ته یې وښودل چې مونږ ستراتیژیک ملګري او له افغانستان سره کومه ستونزه نه لرو.

د ښاغلي سعادت په اند ،چې امریکا زندان افغان چارواکو ته وسپاره خو په قفل شوې بڼه یعنې داسې، چې د بګرام زندان واک اوس هم له دوی سره دی او افغانان یې یواځې د ساتونکو په حیث وظیفه ترسره کوي، خو لکه څنګه، چې دوی سره شوي تعهدات دوی ماتوي افغانان یې هم مات کړي او دغه قفل کله کله مونږ هم مات کړو او زندانیان ترې ازاد کړو، ځکه په نړیوالو حقوقو کې چې کله یو ډېر زورور لوری که هغه تعهدات چې یې کړي دي پوره نه کړي نو ته هم ترې سرغړونه کولی شې، له امریکا سره په شوي تړون کې د افغانستان له خاورې څخه د دفاع ژمنه شوې ده، خو پاکستان پر افغانستان راکټونه ولي، مګر امریکا سکوت اختیاروي نو مونږ کولی شو، د امریکا لخوا زندان ته اچول شوي قلف د ځینې په واسطه مات کړو، نو کله چې مونږ هم بالعکس معاهدو ماتولو ته ملا وتړله نو اوس چې مونږ دوی ته زارۍ کوو بیا به دوی مونږ ته زارۍ کوي، کېدی شي په دفاع وزارت کې یو شمېر چارواکي ولرو، چې د امریکا تر نفوذ لاندې به وي، اما دلته یو ملت هم شته، چې په ځینو مواردو کې بیا تصمیم ونیسي.

ښاغلی سعادت وایي، چې د بګرام زندان افغان دولت ته په یو عالم احسان بارولو وسپارل شو، هغه زیاتوي "کله چې د یو چا حق وي نو حق اخستونکی طرف مکلف دی، چې خپل حق مقابل طرف ته ورکړي، په دې کې د احسان بارولو هیڅ ګنجایش نشته، نو په همدې ډول د برتانیې سترې محکمې پرېکړه کړې وه، چې له دوی سره بندي افغانان باید افغان دولت ته ونه سپارل شي، ځکه هلته شکنجه کېږي، چې دا هم یو سیاسي کړنه ده، ځکه دا شکنجه څه ته ویل کېږي؟ شکنجه اصلا په غیر قانوني توګه په جسمي یا رواني ډول د انسان تعذیبولو ته ویل کېږي، نو اوس یو څوک په کوټه کې بندي کول او له هغه څخه ازادي سلب کول، دا په خپله شکنجه کول دي، په جزاء او شکنجه کې فرق دا دی، چې جزاء په قانوني توګه د محکمې لخوا یو چاته سزا ټاکل دي او شکنجه په غیرقانوني توګه یو څوک بندي کول او سزا ورکولو ته ویل کېږي، نو اوس چې برتانویان کوم زندانونه لري دا په خپله د شکنجې وسیله ده، د بګرام زندان خپله د شکنجې یوه وسیله او ډول دی، ځکه په افغان زندانونو کې به هم د شکنجې خبره وي، چې دا په خپله د اندېښنې خبره ده، خو ددې زندانیانو سرنوشت معلوم دی او کېدی شي له محاکمې وروسته خوشې شي، خو له بهرنیانو سره په په زندانونو کې پراته بندیان بې سرنوشته شپې اوورځې تېروي او په روحي ډول شکنجه کېږي، د برتانیې زمونږ شکنجې ته پام دی خو دا خپله شکنجه ورته هېڅ نه ښکاري، هغوی د ټولو بین المللي قوانینو په خلاف زندان دلته جوړ کړی او خلک شکنجه کوي، بل که چېرته په یو هېواد کې بندیان شکنجه کېږي نو دا دې معنی نه لري، چې بل هېواد د هغوی د زندانونو واک ولري، که په هندوستان کې شکنجه شته، په پاکستان کې شته په ایران کې شته، او یا نورو هېوادونو کې بندیان شکنجه شي نو مونږ دا حق نه لرو، چې هغوی ته ووایو، چې د زندانونو واک مونږ ته وسپارئ ځکه تاسو یې شکنجه کوئ، نو زه وایم، چې رسنۍ او مدني ټولنې باید فشار وارد کړي، چې دا شکنجه دې نه وي، دوه ځله ملګرو ملتونو راپورونه خپاره کړل،چې افغان دولت بندیان شکنجه کوي، خو د بهرنیانو لخوا د بندیانو شکنجه کولو ته هېڅ اشاره نه کېږي".



# به بهانه ی شانزدهمین سالروز نشراتی

# هفته نامه اصلاح ملی

**حمید**

هر چند رسانه قوه چهارم حساب می شود، ولی امروز تأثیر آن از همه قوت ها بیشتر و سازنده تر است. همین رسانه هاست که نقش اساسی در برد و باخت جنگ ها و قضایای بزرگ سیاسی، نظامی و اجتماعی بازی می نمایند و رسانه هاست که می تواند ملت ها را به مسیر درست رهنمون شود ، حقایق را بر ملا سازد و کجی ها و انحرافات را بشناساند. افغانستان نیز پس از تحولات گونه گون وبا آغاز مرحله جدید شاهد گسترش کمی وکیفی رسانه های مختلف بود که بدون شک جانب کمی آن چشم گیر بود ، هر چند در بعد کیفی ملاحظات جدی در مورد وجود داشت.

جمعیت اصلاح افغانستان نیز به حیث یک جهت فعال دینی ، فرهنگی واجتماعی در جامعه افغانی برعلاوه فعالیت ها ودست آوری های خود در بخش های مختلف ،ضمن فعالیت های نشراتی خود، به نشر هفته نامه اصلاح ملی دست یازید. هفته نامه اصلاح ملی درست شانزده سال قبل، از امروز و در برج حمل ۱۳۷۷ هـ ش در دیار هجرت پایه گذاری شده بود ولی با تحول وضعیت درکشور وآغاز تحول رسانه یی در کشور هفته نامه اصلاح ملی نیز در سپهرمطبوعات درخشش تازه یی کسب کرد ، به نورافشانی و روشنگری پرداخت و به مصاف ظلمت زدایی رفت و به باروری افکار و اندیشه ها پرداخت.

هفته نامه اصلاح ملی که نشریه مرکزی جمعیت اصلاح افغانستان است و در هفده ولایت توزیع می گردد، از همان آغاز، رسالتمندانه و با هدف عالی که همانا تلاش در راستای اعتلای علمی، اخلاقی و فرهنگی جامعه و به خصوص نسل جوان و همچنان تقدیم تحلیل درست و بدور از تعصبات قومی، سمتی، زبانی و گروهی، قضایای سیاسی، اجتماعی و اقتصادی و انعکاس فعالیت های جمعیت اصلاح در کشورو... است، قدم به میدان مطبوعات گذاشت و لله الحمد تا امروز همان مسیر را آنگونه که برنامه ریزی کرده بود، می پیماید و از جاده اهداف خود گامی فراتر نگذاشته است.

هفته نامه اصلاح ملی این را وظیفه خود می دانست که همه اقشار ملت را متوجه مسئولیت های ایمانی و دینی شان نماید و با نشرات اصلاحی خود، سهمی در ساختن جامعه یی با ثبات و آسایشمند و بدور از مفاسد اخلاقی، اجتماعی و...داشته باشد و بدین وسیله حقایق را آن گونه که است به ملت خود تقدیم نماید و مسیر درست را فراروی شان ترسیم کند و پیام روشنگری و سازندگی را برای ملت خود به آرمغان آورد و از انبار مشکلات و معضلات کشور پرده بردارد و به عوامل بحران ها انگشت گذارد و راه های حل و طرح های خود را به جوانب ذی دخل ارایه نماید و تکلیف تعاون علی الخیر و فراخوانی به نیکی را ادا کند. این نشریه در عمل ثابت ساخت که تا امروز آنچه نشر کرده و آنچه پیام داده است، در راستای تامین منافع کشور و حل بحران از رهگذر تفاهم بین الافغانی، وفاق ملی، دفاع از ارزشها و تحکیم پیوندهای ایمانی و ... بود.

این هفته نامه متعهد است که با التزام به آموزه های اسلامی و در نظرداشت منافع ملی به نشر واقعیت ها بپردازد و آنچه را به خورد ملت خود دهد که اندکی درد و رنج شان را تخفیف بخشد و روح امید به آینده را در وجود شان بدمد و تشتت و پراگندگی، اختلاف و نفاق را از میان شان برداشته و وحدت و همبستگی را برانگیزد.

این نشریه تلاش خواهد کرد که با وجودامکانات محدود خود، به نشر موضوعاتی بپردازد که بدان وسیله گیلم تعاملات ناسیونالیستی از کشور برچیده شده و بنیاد فساد در همه انواع و گونه هایش برکنده شود و فضای برای زندگی ملت ما فراهم گردد که هیچ دیگر دغدغه بحران آنها را نرنجاند.

خطوط نشراتی امسال ما نیز به همانند سال های پیشین نکات ذیل است:

این هفته نامه متعهد است که با نشر مقالات، مصاحبه ها، گزارش ها وکلمات برگزیده در زمینه های:

- توسعه دادن ارزش های اصیل اسلامی و فرهنگ ملی.
- رشد ارزش های اخلاقی درجامعه و مبارزه علیه مفاسد اخلاقی.
- سهم گیری در رشد و ارتقای سویه ها و زمینه های زندگی مردم و مبارزه علیه فقر، مرض، بی کاری، بی سوادی و جهالت.
- تلاش برای تحکیم صلح و امنیت در جامعه و زمینه سازی برای ایجاد فضای اخوت و برادری و مبارزه علیه تعصبات و تبعیضات سمتی، قومی، زبانی و ...
- توصیه به جوانب ذیدخل در قضایایی سیاسی و نظامی کشور مبنی بر حل مشکل از رهگذر تفاهم و جمع شدن گرد یک پلیت فارم سیاسی.
- نهادینه کردن مفاهیم دفاع از منافع ملی، خدمت به مردم و محبت با وطن در افکار هموطنان عزیز.
- انعکاس قضایایی سیاسی کشور طوریکه به ثبات و سود کشور ما بینجامد.
- بازتاب فعالیت های جمعیت اصلاح در کشور.
- و...

سهم گرفته و تلاش لازم را به خرج دهد و از احاد ملت می خواهد که در تحقق این ماًمول مقدس ما را یاری رسانیده و در کنار ما به خاطر تحقق این خواسته های همگانی ملت قرار داشته باشند.

دکتور مصباح الله

# په افغانستان کې د تعلیمي سویې ستونزه



سره له دې چې د کمیت په لحاظ په تعلیم کې په تیره لسیزه کې ډیر پرمختګ شوی دی، مګر د تعلیمي سویې، معیار او کیفیت له لحاظه د تعلیم حالت خورا زیات خراب دی، د همدې بې کیفیته تعلیم له امله د حکومت د ټولو مشرانو، وزیرانو او مهمو مسؤولینو، او مالدارو بچیان او خپلوان له هیواده څخه بهر په زده کړه بوخت دي، د اکثره وزیرانو کورنۍ خو په امریکا او اروپایي هیوادونو کې دي، او دنورو مالدارو کورنۍ په پاکستان، هند، ایران او یا په متحده عربي اماراتو کې ژوند کوي، چیرته چې دوی د اونۍ په پای کې هلته ځي او بیرته د کار لپاره کابل ته راځي.

دا کسان په دوو اساسي علتونو خپلې کورنۍ له هیواده بهر میشت کوي: لومړی خو امنیتي حالات دي، ځکه دا خلك د امریکا له هر اړخیز ملاتړ سره سره د روان نظام پر بقاء باور او یقین نه لري، او نه خپلې کورنۍ او خپل خپلوان د افغانستان په داخل کې محفوظ ګڼي، او دوی پخپله دمال او دولت اوثروت د جوړولو لپاره په افغانستان کې اوسیږي، او دویم سبب د اولادونو زده کړه ده، ځکه دا خلك غواړي چې خپلو ماشومانو او اولادونو ته ښه، معیاري او باکیفیته تعلیم مهیا کړي، کوم چې په افغانستان کې اصلا وجود نه لري، تر دې چې په شخصي ښوونځیو کې هم باکیفیته زده کړه وجود نه لري، دولتي ښوونځی خو لاپریږده، د ولس نورو وګړو ته چې هر ډول تعلیم ورکول کیږي، هغې سره دوی هیڅ سر وکار نه لري، همدا په بیلا بیلو ډګرونو کې د فعلي حکومت د ناکامیو بنسټیز لاملونه هم دي.

همدا راز تر اوسه پورې په بهرنیو هیوادونو کې د مهاجرینو د پاتې کیدو د مهمو لاملونو څخه همدا دوه شیان دي، بلکې زه ډیر داسې خلك پیژنم چې هیواد ته د ستنیدو نه وروسته بیرته پدې خاطر پاکستان ته کډه شول، تر څویې ماشومان د هغه هیواد په تعلیم ځایونو کې زده کړې ته دوام ورکړي.

**د معیار او سویې د ښه کولو وسایل**

د تعلیم د سویې او معیار د ښه کیدولو یو لړ وسایل او لاملونه دي، تر هغو چې دا وسایل او اسباب مهیا نشي د تعلیم د کیفیت او معیار او سویې د ښه کیدلو توقع لرل پر ځای کار نه دی، له همدې امورو موجودیت او نه موجودیت د تعلیم د سویې او کیفیت د معلومولو لپاره یو معیار او تله هم په لاس کې راکوي، هر څومره چې دا لاملونه په ښه سویه وي، هومره به د تعلیم معیار پورته اوهر څومره چې دا لاملونه په کمه سویه وي، نو هومره به د تعلیم سویه هم ټیټه وي، زما په نظر دا وسایل او اسباب په لاندې ډول دي:

١ -په ښوونه او روزنه کې مقصدیت.

٢ -د پوهه او تجربه کارو ښوونکو موجودیت.

٣ -امنیت او دباوري چاپیریال موجودیت.

۴ -د زده کړې لپاره لازم او ضروري وسایل او آسانتیاوې.

۵ -ښه او په زړه پورې تعلیمي نصاب.

۶ -ښه اداري نظام او سیستم.

ددې معیارونو په رڼا کې که د افغانستان ښوونیز حالات وڅیړو، نو څرګندیږي چې دکیفیت، سویې او معیار په لحاظ

به په افغانستان کې دتعلیم او زده کړې څه حال وي.
**لومړی: ښوونه اوروزنه او مقصدیت:**
سره له دې چې دا یوه نړیواله مسأله ده، چې په اوسنۍ زمانه کې تعلیم یوازې په مادي موخو او مقاصدو کې منحصر کړی شوی دی، او داخلاقی ارزښتونو اړخ په بشپړه توګه له نظر نه غورځول شوی دی، مګر دا مسأله په افغانستان کې ډیره څرګنده څکه ده، چې دلته له نوي سر نه دښووني او روزنې د نظام بنسټ کیښودل شو، په دې پیل کې له دې څخه غفلت د افغانستان له مسلمان ملت سره یوه لویه جفا ده.
اهداف او مقاصد دی چې دتعلیمي نظام سمت (Direction) ټاکي او دهغې قبله په ګوته کوي، که په افغانستان کې هم د غربي نړۍ په څیر د سیکولریزم پر بنسټ د دین او دنیا تقسیم معتبر وګڼلی شو، او په اخلاقی او ایمانی لحاظ د صالح انسان جوړول د تعلیمي مقاصدو او اهدافو نه د یو بنسټیز هدف په توګه ونه ګڼل شول، نو دا تعلیمي نظام به دیوې سالمې افغاني ټولنې په جوړولو کې د یو مؤثر عنصر حیثیت ونه لري، که د ښوونې او روزنې په ذریعه د اعتدال!، او میانه روي (Moderation) په نوم د افغانستان مسلمانه ټولنه د اسلام له اصلي او حقیقي تعلیماتو نه د لیرې کولو کوښښ وکړای شو، نو پدې صورت کې به دا تعلیم دافغانی ټولنې د فکري تشتت او پراګندګۍ ذریعه وګرځي، او ددې پر ځای چې ښوونه د ټولنې د تعمیر او جوړونې وسیله او ذریعه شي، دا به برعکس دهغې د تخریب ذریعه وګرځي.
همدا راز که ددې تعلیم په ذریعه داسلام د بشپړ، مکمل او سالم تصور د راشرګندولو او د زده کوونکو په اذهانو کې د ترسیخ کولو پر ځای، د حقوق العباد په نوم یوازې په یو څو تیت ویرك اخلاقي ارزښتونو باندی ټینګار وشو، نو پدې صورت کې به دا تعلیمي نظام د مستقل مزاجو، باجرأتو وګړو د تیارولو پر ځای، د داسې افرادو او وګړو د تیارولو فابریکه وګرځي چې په خپلو ملي او اسلامي ارزښتونو باندې د فخر او د غرور د احساس پر ځای به د پردیو پر وړاندې دشکست په تسلیمولو او دهغوی په غلامۍ کې د خپل ځان لپاره عافیت او عزت لټوي.
**دویم: پوهه او تجربه لرونکي ښوونکي:**
د هر تعلیمي نظام د کامیابۍ او د ښوونې او روزنې د کیفیت او سویې په لوړولو کې د ښوونکي او استاذ رول بنسټیز اهمیت لري، څکه که د ښوونکو علمي سویه ټیټه، علمي قابلیت یې کم وی، او یا هغه په داسې مسایلو کې را ښکیل وي، د کومو له امله چې خپل تدریسي فرایض په ښه توګه سرته نشي رسولی، نو بیا هغه تعلیمي نظام د سویې ، کیفیت او معیار له لحاظه خپل مطلوب اهداف لاس ته نشي راوړلی، په افغانستان کې د لومړنیو زده کړو د ادارو ښوونکي په ډیرو مسایلو کې را ښکیل دي، له همدې امله دلته تعلیم بې کیفیته او سویه یې ټیټه ده.
دلته د ښوونکو هغه اړوند مسایل د عنوانونو په توګه د لوستونکو په وړاندې ایښودل ضرور ګڼم، چې په افغانستان کې د ښوونې او روزنې نظام ورسره لاس او ګریوان دی.
ا- زموږ ښوونځي د مسلکي ښوونکو د شدید قلت سره مخامخ دي.
ب - د استاذانو دعلمي سویې ستونزه.
دویمه لویه ستونزه د ښوونکو ټیټه علمي سویه، او ټیټ علمي قابلیت دی، دا هم د زده کوونکو د علمي سویې د خرابۍ یو بنسټیز لامل او سبب دی، څکه چې کله د ښوونکو قابلیت او سویه ټیټه وي نو هغوی به زده کوونکو ته څه ورکړی شي؟ د ښوونکی د سویې ټیټوالی یوازې د کومې ځانګړې سیمې ستونزه نه ده، او نه له کوم ځانګړي مضمون سره تړاو لري، بلکې دا یوه عامه ستونزه ده.
ج- د ښوونکو د معاشاتو دلږوالي ستونزه
د تدریس میدان ته د لایقو او پوهو وګړو د نه راتګ، او په دې ډګر کې د دلچسپۍ نه اخیستلو یو بنسټیز لامل او سبب ښوونکو ته د دولت لخوا نه د ډیرو کمومعاشاتو ورکول دي.
**دریم: امنیت او اطمینانی حالت او تعلیمي چاپیریال:**
د ښې تعلیمي سویې د لاس ته راوړلو لپاره دامن نه ډك ښه اطمینانی تعلیمي محیط منځ ته راوړل انتهایی ضروری خبره ده، ددی نه زما هدف دادی چې هغه وګړی چې د تعلیمي نظام سره تړلی دی هغوی ددی اطمینان ولری چې کوم نظام کې چې هغوی کار کوی هغه یو موقت نظام نه دی بلکې په خپلو پښو ولاړ یو دایمی نظام دی، همدا راز دغه وګړی باید د خپل مال او ځان په رابطه د نظام د مخالفو قوتونو له پلوه په امن کې وی او مطمئن اوسي، همدا راز دامنیت په مفهوم کې دا هم راځی چې د ښوونې او روزنې سره تړلی وګړی په دولتی دوایرو کې د مسلحو کارکونکو اوپخپله د زده کوونکو له پلوه اطمینان محسوس کړی، چې په افغانستان کې د دی دری واړو څخه یو ډول امنیت هم میسر نه دی نو په داسی حالاتو کې په مطمئن زړه په تعلیم او تربیی کې مشغول پاتی کیدل ممکن نه دي، او کله چې دا کار په اطمینان سره سرته ونه رسیږي په دی کې اتقان نشي راتلای.
مګر په افغانستان کې داسی د امن نه ډك او د اطمینان وړ محیط موجود نه دی، څکه چې تر اوسه پوری خلکو ته په بشپړه توګه ددی اطمینان نشته چې د امریکا په امسا ولاړ دغه فعلی نظام یو دایمی نظام دی، تر څو خپله راتلونکی ورسره وتړی، او دا له دی امله چې هغوی په دې پوهیږی چې د نورو په ملاتړ او زور چلیدونکی نظامونه او حکومتونه چې هر څومره محکم او مضبوط شی د ملاتړ د لیری کیدو نه وروسته ولاړ نشی پاتي کیدای، په ځانګړی توګه په داسی حالا کې چې د هغی نظام او حکومت پر ضد د هیواد په

دننه کې مسلح مقاومت هم جريان ولرى، ددى ځرګنده بيلګه په افغانستان کې د کمونستانو نظام دی، د همدی اطميناني کيفيت د نشتوالی له امله ډير خلك د اوسنی نظام سره هم خپله راتلونکی تړل نه غواړی.
له بله پلوه د کرزي د نظام مخالفين هم په تعليمي ډګر کې د کار کوونکو د ويرولو او دهغوی په زړونو کې د رعب او ويرى د اچولو هيڅ فرصت د لاسه نه ورکوی.
ددې ترڅنګ په ډيرو سيمو کې ټوپك ماران هم د تعليمي محيط امنيت له منځه وړي، ددوی خپل خپلوان نه څوك ناکامولی شي، او نه دهغوی کومه غوښتنه کوم ښوونکی او سرښوونکی او د ښوونځي مدير ردولای شي، او څوك چې داسې کوم جرأت وکړي، هغه خو يا خپل ژوند له لاسه ورکوي او يا هم معيوب کيږي، په ځانګړې توګه په داسې سيمو کې چې تر اوسه پورې يې وسله وال خپله وسله په لاس کې لري، دا وسله وال خلك د کال په پای کې داسې کسان راولي چې نه خوپه ټول کال کې ښوونځي ته حاضر شوی وي او نه په کوم ټکې پوهيږي، او غوښتنه يې دا وي چې دا خلك بايد د سامع په حيث په امتحان کې شامل شي، تر څو شهادتنامه تر لاسه کړي، داسې کسان نه څوك ناکامولی شي، او نه يې امتحان کې د کښينولو نه انکار کولی شي، په دې توګه بې شميره بې سواده خلك د ښوونځيو څخه فراغت پاڼې تر لاسه کوي، او په دې توګه د ښوونې او روزنې سويه او کيفيت په پرله پسې توګه خرابيږي.
همدا راز دولتي امنيتي ادارې هم په دې کار کې دچا نه وروسته نه دي، په دې ادارو کې کار کونکي هم خپل ځانونه د هر ډول قانون نه پورته بولی، او ځان ته حق ورکوی چې پخپل امر کوم ښوونځی ته ولاړ شی او په زده کوونکو تشدد وکړی او ښوونکو ته ستغی سپور ووايی او تهديد يی کړی، او خپلی غير قانوني غوښتني عملي کړي، پداسی غير اطميناني فضا او محيط کې ښوونه او روزنه څنګه پرمختګ کولی شي.
ددې تر څنګ په ښوونځيو کې د بد عمله او بد معاشه هلکانو موجوديت د ښوونکو او ښوونځيو لپاره يوه بله ستونزه او يو بل مصيبت دی، هغه هلکان چې ښوونځي ته يوازې د وخت تيرولو او نورو بد معاشيو لپاره راځي، داسې هلکان خو يا په دولتی ادارو کې د مهمو خلکو او يا هم په ټولنه کې د موثرو خلکو خپل خپلوان وي، او يا هم څه بد اخلاقه هلکان وي، چې په عامه توګه په چاقوګانو مسلح وي، اوږده ويښتان، په غاړو کې زنځيرونه، ګريوانونه خلاص، په خولو کې ژاولي (ساجق)، ددې دپاره ښوونځيو ته راځي چې ښوونکي وځوروي او په ځانګړې توګه زنانه ښوونکې، د نجونو د تنګولو اودا ډول نورو خرابو او لايعنی کارونو لپاره د کورونو نه راوځي، نه يې د زده کړې سره څه دلچسپي وي، او نه ورسره د کتاب او کتابچې په نوم څه شی وي، په ټولګي کې ناست وي او په پرله پسې توګه په موبايل تلفون لوبې کول د هغه کار وي، مګر داسې خلك نه کوم ښوونکی ناکامولی شي او نه يې څوك د ښوونځي څخه خارجولی شي، او نه ورته څوك سزا ورکولی شي، دا ډول خلك د ښوونې او روزنې د کيفيت د ښه کيدو او د سويې د لوړيدو پر وړاندې لوی خنډ دي، په دوی کې څه خو تر دې حده پورې پريوتي او بد کرداره دي، چې په ښوونځيو او ليسو کې دننه شراب هم څښي، ددې خبرې تصديق په کابل کې د ليسو يو شمير ښوونکو هم وکړ، د ښوونې او روزنې د محيط خرابونکي دا لاملونه او اسباب که له منځه يو نه وړل شي د تعليم کيفيت هيڅکله ښه کيدلی نه شي او سويه يې هم نه شي لوړيدلای.
څلورمه ستونزه: د ښوونې او روزنې لپاره لازمي اسانتياوې:
تعليمي نظام تر هغه وخت پورې په صحيح توګه فعال نشی پاتی کيدلی ترڅو چې هغې لپاره يو لړ بنستيزی اسانتياوی برابری نه کړی شی، پرمختګ خو لالیری خبره ده، په دې بنستيزو اسانتياو کې د ښوونځيو لپاره ودانی، د ټولګيو لپاره مناسبی څوکۍ، تدريسی اوزار او وسايل، د زده کوونکو لپاره کتابونه او کتابچې، برق او داسی نور شيان شامل دی،که مونږ د افغانستان په حالاتو يو ځغلنده نظر واچوو نو ځرګنده به شی چې په افغانستان کې تعليمي نظام ددی او داسی نورو بنستيزو اسانتياو نه بی برخی دی، مونږ دلته په لنډ ډول په دی يو نظر اچوو:
ا- د ښوونځيو ودانی.
په افغانستان کې قاطع اکثريت ښوونځي او تعليمي اداری خپلی ودانی نه لری، ښوونځی خو زيات په جوماتونو او په کليو او بانډو کې د خلکو لخوا په ورکړ شو ودانيو او د ملګرو ملتو لخوا په ورکړ شوو خيمو کې فعاليت کوی، او يو زيات شمير ښوونځی خو داسی هم دی چې نه ودانی لری او نه خيمی بلکې په ازاده هوا کې د ونو لاندی زده کوونکی درس وايی.
ب - د ښوونځيو کموالی
د افغانستان په ډيرو سيمو کې خلك د ښوونځيو د کموالی سره مخامخ دی، په ځانګړی توګه په لويو ښارونو کې چيرته چې ښوونځي کم او زده کوونکی ډير زيات دی، لکه کابل، جلال آباد، هرات، مزار شريف او داسی نور ښارونه، ځکه چې په دې ښارونو کې نفوس ډير زيات دی، او موجوده ښوونځي دومره لوی شمير زده کوونکی نشی ځای پر ځای کولی، له دی امله په دې لويو ښارونو کې يو يو ښوونځی په دوه او دری نوبتونو کې کار کوی.
ج- د لومړنيو اړتياو نشتوالی
په ښوونځيو کې د زده کوونکو لومړنی اړتياوی هم نه پوره کيږی، د مثال په توګه په اکثر ښوونځيو کې تشنابونه او قضای حاجت ځايونه وجود نه لری، همدا راز په ښوونځيو کې دڅښلو لپاره صافی اوبه نشته، او دهمدی امله په ښوونځيو کې هميشه د خطرناکو ساری مرضونو د خوريدلو انديښنه وی.
د- د تعليمي وسايلو نشتوالی
همدا راز په ښوونځيو کې تعليمي وسايل موجود نه دی، د مثال په توګه په ډيرو سيمو کې په ښوونځيو کې درسی کتابونه نشته، ځکه چې په ښوونځيو کې

کتابونـه د دولت لخوا ورکـول کیـږي، نـو یـوازې د دولت لخـوا چـاپ کیـږي، اوکـه بالفرض څوك کومه شخصي اداره دا کتابونه په خراب کاغذ او خراب معیار چاپ هم کړي هغه لیري سیمو ته نه رسیږي، او کله چې د زده کوونکي په لاس کې درس کتاب نه وي نو زده کړه به څنګه ممکنه وي؟ همدا راز په دې ښوونځیو او لیسو کې توري تختې او تباشیر په څیر ابتدایي وسایل هم نشته، دا خو لا پر ځای پریږده چې هلته د ساینسي مضامینو لپاره لابراطوار او دعامې مطالعې لپاره کتابخانه وجود ولري، په داسې حالاتو کې د ښوونې او روزنې د حالت درست کولو توقع څرنګه کیدلی شي.

هـ- ښه او ګټور تعلیمي نصاب

تعلیمي نصاب هغه وسیله ده چې د هغې په ذریعه د انسانانو فکري جوړښت صورت مومي، که تعلیمي نصاب د علمي معیارونو سره سم وي، او په عین حال کې یې قبله او سمت (Direction)هم درست وي، نو د ملت د بچیانو په ژوند ډیرې ګټورې اغیزې پریږدي، مګر که دتعلیمي نصاب په ذریعه دملت بچیان د انحراف خوا تـه کش کړې شي نو په دې صورت کې یې هم نتایج خطرناك او تباه کونکي وي، همدا راز که تعلیمي نصاب په علمي لحاظ د اعتماد وړ نه وي، او په هغې کې د علمي معیارونو رعایت نه وي شوی، نو دداسې تعلیمي نصاب نه د فارغیدونکو څخه د کومې غیر عادي کړنې او کارنامې توقع لرل بې ځایه کار وي، د اسلامي نړۍ په هره برخه کې چې تعلیمي نصاب ترتیبیږي نو باید لاندې اهداف پکې په نظر کې ونیول شي:

تعلیمي نصاب پداسې توګه ترتیبول چې دهغې په ذریعه زده کونکي ته اخلاقي او دیني قدرونه او ارزښتونه وروښودل شي، اوددې په ذریعه داسلام درست او بشپړ تصور ورکړل شي، تر څو له هغې څخه یو ښه انسان او یو ښه مسلمان جوړ شي.

باید د تعلیمي نصاب یو بنسټیزه موخه او هدف دا وي، چې زده کونکي په تاریخي لحاظ د خپل ملت د مثبتو کړنو څخه د خبریدو تر څنګ، لومړی د اسلامي امت او بیا د نړۍ د تاریخ څخه باخبره شي، او د خپلو مسلمانو ګاونډیانو سره ګډو تاریخي ا و جغرافیایي اړیکو ته تبارز ورکړل شي، داختلافاتو او دښمنیو د راکمولو کوښښ وشي، تر څو ددې نصاب له لارې مونږ داسې څوك تیار کړی شو، چې خپل هیواد سره مینه لرونکي او وفادار وي، او د خپـل هیـواد یـو مخلص اوسیدونکی او د اسلامي امت یو ښه فرد ترې جوړ شي.

باید د تعلیمي نصاب یو هدف دا وی چې زده کونکو کې دا اهلیت او قابلیت پیدا کړی شی چې پخپله د انسان، او بشري ټولنې څخه باخبر وی، په بشري ټولنو کې د راپیدا کیدونکو بیلا بیلو تصوراتو او افکارو نه آګاه او باخبر وی، د درستو او غلطو افکارو او تصوراتو تر منځ توپیر وکړی شی، تر څو د خپل ځان او خپلې ټولنې په ښه اداره او قیـادت کې رول ولوبـولی شـي، درست افکـار خپـل کـړی شـي او د غلطـو تصوراتو او افکارو څخه ځان وژغورلی شي.

د تعلیمي نصاب یوه موخه باید دا وي چې د ژبې په شکل کې زده کونکو تـه هغـه وسیله ورکړی شي چې د خپل زړه خبره په ښه توګه نورو ته ورسول شي.

د تعلیمي نصاب یوه موخه باید دا وي چې په علمي او ساینسي لحاظ زده کونکو کې ددې اهلیت او قابلیت را پیدا کړی شي چې د بشري ټولنې په پرمختګ کې مؤثر رول ولوبولی شي، او په دې ډګر د خپل هیواد او خپل ملت لپاره د خدمت مصدر وګرځي.

آیا زموږ اوسني تعلیمي نصاب دا اړتیاوې پوره کوي دا د تأمل وړ خبره ده.

ز- ښه اداري نظام

یو بل بنسټیز عنصر چې د تعلیم د پرمختګ لپاره ضرور دی، هغه دتعلیمي ادارو او پخپله د ښوونې او روزنې د وزارت بهتره اداره اوښـه اداري سیستم دی، په دې توګه چې د معارف وزارت د یو مسلکي وزارت پـه توګـه د سیاسـت څخـه لیـری وي، یـو فعـال مـدیریت د وسـایلو د کمـوالی سـره سره په ستونزو باندې غلبه موندلی شي او کار پر مخ بوتللی شي، مګر په افغانستان کې چې څنګه د ښوونکو پـه تقرر کـې د احتیـاط څخـه کـار نـدی اخیسـتل شـوی، همدا راز پخپلـه د ښـوونې او روزنـې پـه وزارت کـې د وزیـر نـه نیـولی تـر ډیـرو موظفینو او په ډیرو ولایتونو کې د ښوونې او روزنې پـه ریاستونو کـې د لـوړ پوړي موظفینو او همد راز د ډیرو ښوونځیو او لیسـو د مـدیرانو او سرښـوونکو پـه ټاکنـه کې له دقت څخه کار ندی اخیستل شوی، لـه همـدې املـه د نـورو ادارو پـه څیـر د ښوونې او روزنې سره اړونده ډیرې اداری د ستونزو سره لاس او ګریوان دی، په دې ادارو کـې یـو شـمیر خلـك د خپلـوی پـه بنسټ مقرر شوی د، یو څه نور د رشوت په نتیجه کې مقرر شوي دي، له دې امله د ښـوونې او روزنـې پـه اړونـده ادارو کـې داسې نا اهله کسان مقرر شوي دي چې نـه ښـوونې او روزنـې پـه وړانـدې د پرتـو ستونزو د لـه منځـه وړلـو پـه بـاب غـور او فکـر کـوی، او نـه د ښـوونې او روزنـې د پرمختګ سره کومه دلچسپي لري.

د ښـوونې او روزنـې پـه دې ادارو کـې د مخلصـو او اهـل کسـانو د عـدم تقـرر بنسټیز اسباب لکه مخکې مو چې یادونه وکړه رشوت، خپلولي پالل، او د یـو لـړ وظیفـو لپـاره ډیر کم معاشات دي چې د یو عادي ژوند د تیرولو لپاره هم کفایت نه کوي.

په لنډو ټکو کې دا یو لړ هغه مشکلات دي چې د تعلیم د معیـار او سویې پـه مخ کـې خنـډ واقـع کیـږي، کـه مـوږ د تعلـیم سویه لوړول غـواړو، نـو هـرو مـرو بایـد دا ستونزې له منځه یوسو.

